# فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

# علم تجويد

# لومړی برخه

## دتجويد تعريف او اهميت :

### ۱- د تجويد تعريف :

تجويد په لغت کې ښه کولو ته وايې او په اصطلاح کې عبارت دی له اداء کولو د هر حرف پخپل مخرج (ځای د اداء) کې، د ادابو او صفاتو له مراعاتولو سره .

### ۲- د تجويد دعلم موضوع يا هدف :

د قرآن لوستل په صحی توګه لکه څنګه به چې رسول الله ص او اصحابو کرامو رض قرآن کريم لوستلو يعنی د قرائت د احکامو حفاظت کول لکه ادغام ، اظهار ، اقلاب ،

اخفاء ، مد ، غُنه په خپل ځای کې عملی شي او حروف له خپل مخرج څخه اداشي د

ټولو احکامو په نظر کې نیولو سره د قرآن کریم په قرار لوستل داسې نه چې ټول سره

ګډوډ شي او بل د قرآن په ښه آواز سره لوستل .

## ۳- دتجوید اهمیت :

د تجوید اهمیت د قرآن کریم داسې لوستل چې له غلطیو مخنیوی وشي یعنی د

تجوید د احکامو مراعاتول چې د تجوید د احکامو او دحروفو د تلفظ نه مراعاتولو

ته لحن وايي

لحن دوه ډوله دی لحن جلي او لحن خفي

## لحن جلي :

داسې ښکاره غلطی ده چې د کلمې په معنا کې بدلون رامنځه ته کړي لکه په لاندې

حالاتو کې :

الیف ) :د یوه حرف بدلیدل پر بل حرف باندې مثلاً د "ث" حرف په "س" سره تلفظ یا د

"ذ" حرف په "ز" سره تلفظ کول یعنی چې حرف له خپل مخرج څخه ادا نشي دا یوه

ښکاره غلطي ده .

ب ) : د کلمی د حروفو یو حرف کمول لکه " هُمُ الْخَاسِرُونَ " داسې لوستل " هُمُ الْخَاسِرُن" د واو حرف ځرګند نه کړي .

ج ) : په حرکاتو کې بدلون (زور ، زیر ،پیښ او سکون ) مثلاً د " یُوصَلَ " په کلمه کې " یُوصَلُ" د لام حرف د زور پر ځای پیش تلفظ شي .

د): یوه کلمه داسې تلفظ شي چې د هغه د حروفو په تعداد کې ذیاتوالی راشي د مثال په ډول " الحمد لله" د "دال" حرف د پیښ اود "ها" زیر داسې اوچت تلفظ شي چې د واو یا ي آواز ترې پیدا شي لکه "الحمدوللهي" .

د جلي لحن مرتکب کیدل حرام دي او په ځنو ځایونو کې د هغه له کبله معنا بدلیږي او لمونځ فاسیدیږي .

## خفي لحن :

خفی لحن (پټه غلطی ) دهغه قاعدو پرېښودل چې دتوري دښایست سره اړه لري

مثلاً هرکله چې د "را" حرف زور یا پیش ولری "را" ډکه لوستل کیږي او که څوک هغه باریکه ولولی پټه غلطی ورته وایې چې مکروه ده ځان ساتل ورځخه پکار دي .

# د قرآن د تلاوت فضیلت

د قرآن کریم د فضیلت په اړه چې په قرآن او حدیث کې څومره فضائل ذکر شوي دي نو

مونږ خو یې پدې بې کسی او بې وسی کې له سره نشو ټولولای ،بس دومره ویلای شو

چې نن عصر کې نه وحی شته او نه پیغمبر بس یوائې د خالق او مخلوق تر منځ د

ارتباط وسیله قرآن دی او بس .

رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوذر ته وویل :

یا أبا ذر! لأن تغدو فتعلَمْ آیة من کتاب اللّه، خیر لك من أن تصلي مائة رکعة. ولأن

تغدو فتعلَمْ بابا من العلَمْ، عمل بِهِ أوْلَمْ یعمل، خیر من أن تصلي ألف رکعة». ابن

ماجه

«ای ابوزره ! کچیرې ته سحر لاړ شې او یوآیت د قرآن پاک زده کړې نو د سل رکعته

نفلو نه بهتره دی ، اوکچیرې یو باب د علم زده کړې که دغه وخت دې عمل پرې کړی

وي یا نه نو د زرو رکعتونفلو کولو نه بهتر دي ». (ابن ماجه )

دری کسان دی چې د قیامت د ورځې دویرې نه بچ وي او بې حسابه به جنت داخلیږي

رجل قرء القرآن ابتغاء وجه الله وام به قوماً وهم به راضون وداع یدعون اِلى الصلوات ابتغاء وجه الله ورجل احسن فیمابینه وبین ربه وفیمابینه وبین عوالیه (رواه الطبرانی )

((یو هغه سړی چې د رب ج لپاره یې قرآن ولوستلو او داسې امامت یې وکړ چې مقتدیان ترې راضی وو ، دوهم هغه سړی چې صرف د رب ج د رضا لپاره خلک لمانځه ته بولي ،دریم هغه سړی چې د خپل رب ج سره هم ښه معامله ساتې او د خپلو ماتحتو(تر لاس لاندې خلک ) سره هم)) .

من قرء عشر ایات في لیلة لم یکتب من الغافلین (رواه حاکم )

((څوک چې لس آیتونه د شپې تلاوت کړي هغه به د غافلینو نه نه شمارل کیږي .

د لسوآیتونو په تلاوت سره چې څو دقیقې وخت نیسی د ټولې شپې له غفلت څخه وځې ددی نه ذیات فضیلت به چیرې وي)) .

من قرأ حرفاً من کتاب الله فله به حسنة و ألحسنة بعشر أمثالها . جامع ترمذي

((د قرآن دیو حرف په لوستلو یوه نیکي ده او د نیکې عوض لس چنده دی )).

د یوې نیکې قدر به هلته ولګي چه د نکیو او بدلیو تلل وي .

او بيا بدی پر نيکی درنه شي .

# د قرآنکريم د تلاوت آداب

۱- له بې اودسی او جنابت څخه د بدن پاکوالی .

۲- مستحب ده چې د تلاوت په وخت کې سړی د قبلی په لوري ناست وي .

۳- د تلاوت په شروع کې د «اعوذ بالله من الشيطان الرجيم» ويل واجب دي قوله تعالی :

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ (98 النحل)

۴- د هر سورت په شروع د « بِسْمِ اللهِ الرَّحْمنِ الرَّحِيمِ» ويل واجب دي په خاص توګه د فاتحی سورة په شروع کې .

۵- قرآن په ترتيل سره لوستل (ورتل القرآن ترتيلا ) د ترتيل په باره کې شاعبدالغزيز رح په خپل تفسير کې ليکی دي چه ترتيل په لغت کې صفا او واضح لوستلو ته وايې او

په شریعت کې د څو څیزونو لحاظ ساتلو سره تلاوت کولو ته وایې چه هغه څیزونه په

لاندې ډول دي :

الف - د حروفو صحیح ادا کول یعنی د خپل مخرج څخه چه د ضا پر ځای دال یا ظا

تلفظ نشي .

ب - د وقف پر ځای په شان سره درېدل چه وصل او قطع یعنی یو ځای کول او جدا کول

د کلام بې ځایه نشي .

ت - حرکتونه سره کډوډ نشي زور ،زیر او پیښ په ښه شان ښکاره ادا شي .

ث - آواز لږ اوچتول چې د قرآن الفاظ له ژبې اوزي او عوږونه واوري .

ج - قرآن په ښه آواز دردونکې غږ تلاوت کول چې په زړه اثر وکړي دردناک آواز په زړه

ډېر اثر کوي .

ح - شد او مد ښه ښکاره کول چې ددی په ښکاره کولو سره د قرآن لوی شان ښکاره

کیږي او له اثر سره مدد کوي .

خ - د رحمت او غذاب د آیتونو حق ادا کول .

۶- د تلاوت پر مهال حاضرین ته واجب دی چې چوپ وي او په نورو کارونو له مشغولیدو څخه باید ډډه وکړئ قوله تعالی : وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا (اعراف ۲۰۴)

۷- قاري او اوریدونکی ته په کار ده چې په خشوع او ادب سره خپل زړه او حواس د قرآن تلاوت ته متوجه کړي چې دا د سکوت له غوښتنی څخه ده لکه په مخکې آیت کې.

مګر فریاد ،چیغی کول شور ماشور جوړول د قرآیت په وخت کې د مشرکانو صفت دي ځکه کله به چې قران لوستل کیده نو مشرکانو به یوله بله سره خبري چیغی او شورماشور جوړولو چې قرآنکریم ورته داسې اشاره کړي ده .

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لاَ تَسْمَعُوا لِهَذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ (فصلت 26 )

(( او کافرانو ویل دغه قرآن ته غوږ مه نیسی او په هغه (مهال ) بیهوده خبرې کوی .))

۸- قاري باید تر خپله وسه قرآنکریم په ښه صوت سره تلاوت کړي ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : (لیس منّا من لم یتغنّ بالقرآن) ((هغه له مونږ څخه نه دی چه قرآن په ښه آواز نه لولی)) .

۹- قاري باید خپل صوت د سندرو ویونکو ،فاسقان یا یهودو او نصارا د دینی

آوازونو سره تشبح نه کړي او په او دښه صوت په کوښښ کې د بې ځایه تکلف نه ځان

وساتي .

۱۰- قاري او اوریدونکی به د قرآن په آیتونو کې به تدبر فکر کوي او د هغه په

معنی او مقاصدو په پیدا کولو کې به فکر کوي .

أَفَلاَ يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ (النساء 82 ) (( ایا په قرآن کې تدبر او فکر نه کوی ))

۱۱- د قرائت په وخت کې په خشوع کې مبالغه کول او قصداً د ژړا کولو کوښښ

مستحب دی

تر څو د خدای ج غظمت او لویې په یاد راوړل شي چې قرآن دهغی کلام دي .

۱۲ – تر خپله وسه د قرآنکریم د اوامیر اطاعت کول او دهغه له مخالفت څخه ځان

ساتل ځکه قرآن به د قیامت پر ورځ هغه چاته حجت ،نور او شفاعت وي چې عمل یې

ورباندې کړی وي .

مګر هغه څوک چې قرآن تلاوت کوي خو د قرآن له دستوراتو او اوامیرو څخه

سرغړونه کوي نو قرآن به د قیامت په ورځ پر داسې کس لغنت وایې .

۱۳- یو مسلمان ته پکار ده چې حد اقل په څلویښتو ورځو کې یو ځل قرآن ختم کړي او سنت ده چې هره ورځ یو جزء تلاوت کړي یا حد اقل د ورځې لس آیته تلاوت کړي ترڅو د غافلان په ډله کې حساب نه شي .

۱۴- مستحب ده چې قاري د قرآن د ختم کې دعا وکړي نور هم حاضر کړي چې په دعا کې ګډون وکړي ځکه چې دا د دعا د استجابت او د خدایﷻ د رحمت د نزول وخت دی .

۱۵- باید د قرآن تلاوت د خدایﷻ د رضا لپاره وي ځکه چې د قرآن تلاوت له لویو عباداتو څخه دی نو عبادت باید د غیرالله لپاره نه وي .

۱۶- تلاوت د بل غرض او اجرت اخیستلو لپاره حرام دی ، که دچا نه د قرآن په زده کړه اجرت واخیستل شي مکروه دی .

من قرء القران یتاکل به الناس جاء یوم القیامة و وجهه غظم لیس علیه لحم (رواه بیهقي)

((څوک چې قرآن ددی لپاره وایي چه د خلقو نه خوراک وکړي د قیامت په ورځ به په داسې حال کې راشي چه د هغه مخ به تش هدوکې وي غوښه به پري نه وي )).

۱۷- په قرآن کې مجادله کول حرام دی که په کوم شی کې مشکل لري دینی علماؤ

ته به ورځي یا به تفاسیر مطالعه کوي .

د مجادلی او اختلافاتو به لاس اخلی او له هغه ځای ځحه به وځي .

«لاتماروا فی القرآن فإن ألمراء فیه کفر» (مسند احمد).

((په قرآن کې به منازعه نه کوي ځکه په قرآن کې مناغه کفر دی))

۱۸- د تلاوت د آیت په اوریدلو سره د تلاوت سجدي اداکول .

# د حروفو مخارج

مخارج جمع د مخرج ده مخرج دوتلوځای ته وایي .

دتجوید په علم کې مخرج هغه ځای دی کوم چې توری ورڅخه ادا کیږي .

چې په حلق ،خوله ،شونډی او د خولی خالیګاه څخه ادا کیږي.

دیوحرف د مخرج پیداکولو اسانه طریقه داده چې دحرف نه مخکی همزه راوړو او

نومړي حرف ساکن کړځي هر چیرې چې آواز ختم شو همغه یې مخرج دي .

مثلا د" ب" حرف "همزه" وربانديِ اضافه کوو " أبُ" وينو چې آواز يې د دوو شنډو

ترمنځ کله چې سره وچسپيږي نو ويلای شو چې د"ب" مخرج د دو شنډو چې سره

ولګيږي ادا کيږي .

د حروفو مخارج په لاندې برخو ويشل شوي :

اول : حلق (ستونى ):

له ستوني څخه شپږ حروف په لاندې ډول تلفظ کيږي :

د حلق آخر د سينې له طرفه "همزه" او" ها" تلظ کيږي (أء أء) (أه أه ).

د حلق له منځنۍ برخې څخه "ع" او "ح"راوځي (أع أع ) (أح أح ).

د حلق له شروع يعنى د خولې له طرفه "غ" او "خ" تلفظ کيږي (أغ أ غ) (أخ أخ ).

دوهم د شونډومخرجونه :

د شونډو څخه څلور توري په لاندې ډول ادا کيږي :

1- کله چې پاس او لاندې شونډې سره ولګيږي "ب" او "م" تلفظ کيږي .

2- هرکله چې دواړه شونډې د ګل د غوټۍ په څير راغونډې شي او سره ونه لګول شي

نوبې مده "و"ادا کيږی .

3- د لاندنۍ شونډه د پاس غاښونو له څوکو سره پیوست کولو سره "ف" توري ادا

کیږي .

دریم د خولې داخلی خالیګاه (جوف):

له دغه ځای څخه دری مدلرونکي توري ادا کیږي .

١- " و " کله چې ساکن وي او له هغه څخه مخکې حرف پیښ ولري لکه "المغضوب "

2- " ی" کله چې ساکن وي او مخکې حرف یې زیر ولري لکه " نستعین "

3- "الف" کله چې بې حرکته وي یعنی سکون ولري او له هغې مخکې حرف زور ولري "
قَالَ کښې .

دعملي مثالونو لپاره لاندې سافټویرونه او ویدیو ضروري ډونلود کړئ .

احکـــــــــــــــــــــــــــام تجویـــــــــــــــــــــــــــد
http://www.almeshkat.net/books/arch...oks/Tajweed.zip

احکام تجوید په نړیواله سطحه د تجوید د زده کړې سافټویر دی کله مو چې په خپل کمپیوټر کې نصب کړ ښې طرف ته د عناوینو له لیست څخه (مخارج الحروف وصفاتها ) کلیک کړئ بیا تفصیل مخارج کلیک کړئ ورسته په صفحه کې منځنۍ عنوان د فهرس حسب المخارج الرئیسیة ووهی بیا د خپلې خوښی مثلا حلقي حروفو مخرج ننبه کړئ ورسته د حروفو د مخارجو د ادا په صوت کې د پاره چیپې خوا ګنج کې د لاوسپیکر علامه ووهی او ادا کولو ته غوږ شی .

بل مهم سافټویر ډونلوډ کړئ : داهم ډیر مهم سافټویر دی چې د تجوید علم پـه عربـي ژبه تشریح کوي ولی زمونږ لپاره یې مثالونه ډیر مهم دي .

د ح،خ حروف مخرج او د هغې ادا په غږ کې ډونلوډ کړئ

د ع،غ، و حروفو مخرجونه او ادا په غږ کې ډونلوډ کړئ

## څلورم ژبه (لسان ) له ژبې څخه 18 حروف ادا کیږي

1- د" ق " مخرج :

هرکله چې د ژبی پای له نرم تالو سره ولګیږي د "ق" توری ادا کیږي .

2- د"ک" مخرج هم د" ق" په څیر د ژبې پای له تالو سره لګیدو سره تلفظ کیږي مګر دومره توپیر چې د قاف له مخرج څخه لږ بیرون د خولې طرف ته او دهغې د تلفظ پر مهال کوچنۍ ژبه آزاده وي او دژبی په پای پورې نه سریښیږي .

3- د " ض " مخرج :

کله چې د ژبې یو اړخ له پاس خوا (له ښي څخه چپ لور ته ) د

اضراسي غاښونو سره ولګول شي د" ض" توری تلفظ کیږي البته

له چپې خوا څخه يې ادا کول اسانه دی .

خو پام وشي چې ض د "ظ" او "د" په څير ادا نه شي .

4- د " ل " مخرج :

هر کله چې د ژبې څوکه  دپاسنيو ثناياغاښونو د بيخونو سره

ولګول شي د "ل" توری ادا کيږي .

5- د" ن " مخرج :

هرکله چې د لام د مخرج نه لږ کښته د ژبې څوکه د رباعياتو

غاښونو د بيخ سره ولګول شي "ن" توری ترې راوځي .

۶- د" ر " مخرج :

کله چې د ژبې د څوکې شا د پاسنيو ثنايا غاښونو د بيخ سره

ولګول شي "ر" توری ترې راوځي .

7- د"ط ، د ، ت"  مخرج :

د "ط ، د ، ت" مخرج هر کله چې د ژبی دشاطرف سر د پاسنيو

ثناياوو له بيخ سره ولګيږي ، خودومره توپير شته چې د" ط "

حرف د استعلاء د صفت د لرلو له کبله سخت او ډبل ادا کيږي .

8 - د"ظ ، ذ ، ث" مخرج :

هرکله چې د ژبې د شاطرف سر د پاسنیو ثنایا له څوکوسره

ولګیږي د (ظ ، ذ ، ث) حروف اداکیږي .

9- د" س،ز،ص " مخرج :

هر کله چې د ژبې سر د لاندنی ژامې د ثنایاوو له اړخ سره

ولګیږي او لږ تړاو د پاسنۍ ژامې له ثنایاوو سره هم لري .

یاداسې ویلای شو هر کله چه د ژبې پاسنی طرف د پاسنیو او

لاندینیو ثنایا غاښونو د منځ سره پیوسته شي نو د "ز،س،ص"توري

ادا کیږي .

10- د" ج،ش،ي " مخرج :

کله چې د ژبې منځنۍ برخه دمقابل تالو سره ولګیږي نود" ج ، ش"

او غیر مدي "ی" تلفظ کیږي .

د ژبې په مخارجو کې غاښونه ډیر یا د شوي دی چې د غاښونو

لنډبیان په لاندې ډول دی :

غاښونـــــــــه

غاښونه عموماً پر څلورو برخو ویشل شوي دی ثنایا ،رباعی

،انیاب او اضراس

## 1- ثنایا غاښونه :

لومړي مخامخ دوه غاښونه دي چي پورته يې ثنایاعلیااو کښته يې

ثنایا سفلۍ دي اوټول ثلوردي .

## 2- رباعی ښاغونه :

دثنایاغاښونوترڅنګ چي یو ښي اړخ ته اویو هم کیڼ اړخ ته د دوه

پورته او دوه کښته غاښونو څخه عبارت دي داهم ثلور غاښونه

دي .

## 3- انیاب غاښونه :

دوه پورته اودوه کښته غاښونه دي .درباعي غاښونو کیڼ اوښي

اړخ ته واقع دي .

4- اضراس غاښونه :

اضراس غاښونه بیا پر دریو برخو ویښل شوي دي :

4.1 - ضواحک

4.2- طواحن

4.3- نواجذ .

په شکل کې د شمارو له مخې ښودل شوي .

نوټ : د ضاد مخرج سخت ادا کیږي او ددی مخرج په ادا کې کوښښ

پکار دی فتاوي دارالعلوم دیوبند پدې مخرج اوږدې لیکنې کړی دی

چه مطلب یې دادی که چا قصداً ضاد د ظا یا دال په بڼه ادا کړ لمونځ

یې فاسد دی .

**خلورمه برخه د ساکن نون اوتنوین احکام (ادغام ، اقلاب،اظهار او اخفاء)**

## د ساکن نون او تنوین احکام

ساکن "ن" هغه دي چې حرکت (زور،زیر او پیښ) ونه لري یعنی

غړوندي واله "نْ" دی او تنوین دوه زورونه ،دوه زیرونه او دوه

پیښونو ته وایي .

په ساکن نون او تنوین کې څلور احکام دی ادغام ،اقلاب ،اخفاء

او اظهار.

## ۱- ادغام :

ادغام لغوي معنی د یو ځیزپه بل ځیز کې داخلولو ته ویل کیږي .

او دعلم تجوید په اصطلاح کې که کله د ساکن نون یا تنوین څخه

وروسته د "یرملون " (ی،ر،م،ل،و،ن ) د تورو څخه کوم یو راشي نو

هلته ادغام کیږي او دا ډول ادغام دوه ډوله دی غنه لرونکی او بې

غنی

### الف : غنه لرونکی ادغام

که د ساکن نون او تنوین څخه وروسته د یمنو (ی،م،ن،و) له تورو

څخه کوم توری راشي غنه لرونکی ادغام پکې کیږي.

ب: بې غنی ادغام:

که د ساکن نون یا تنوین څخه وروسته د لر (ل،ر) کوم توری راشي

بې غنی ادغام پکې کیږي.

دغُنه لرونکي ادغام مثالونه:

{ «ي»: مَنْ يَهْدي _ ايَةً يُعْرِضُوا

{ «م»: مِنْ مالٍ _ قَرارٍمَكين

{«و»: مَنْ وُجِدَ _ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ

{«ن»: عَنْ نَفْسٍ _ شَيءٍ نُكُرٍ.

بې غُني ادغام مثالونه:

{ «ل»: اِنْ لَبِثْتُمْ _ مَتاعاًلَكُمْ

{ «ر» : مِنْ رَبِّكُمْ ـ مَثَلاً رَجُلاً .

غُنه : غُنه هغه آواز دی چې له خیشوم (دپزې له ورسی برخې ) څخه

راوځي اوديوه الف يا دوو حرکتونو په اندازه کش کول کیږي .

دالف اندازه دومره وي لکه خلاصه کوته چې بنده شي یا تړل شوي

ګوته خلاصه کړشي .

غُنه په دوه ډوله ده زماني اوذاتي :

دهمیش لپاره په مشدد میم اون (شد لرونکی "مّ" او "نّ")باندې غُنه

کیږي هرځای چې وي اود ادغام پاتي توری لکه و ،ی کله چې د

ساکن نون او تنوین څخه وروسته راشي .

دصرفیانو په اصطلاح کې که دوه همجنس توري په یوه کلمه کې په

پرله پسې ډول راشي په داسې حال کې چې لومړی یې ساکن او

دوهم متحرک وي نو ادغام منځ ته راځي لومړی توری په دوهم په

دوهم کې مدغم کيږي او داډول ادغام په دری ډوله دی :

١- د جنسينو ادغام :

که دوه توري له يو جنس (يو مخرج ) مخالف صفت څخه په يوه کلمه

کې يرله پسی راشي د جنسينو ادغام منځ ته راځي لکه :قَدتّبَيّنَ –

ارْکَبْ مّعَنَا – يَلْهَثْ ذّلِکَ .

وَدّت طّآئِفَةٌ

٢- دمثلينو ادغام : که دوه يوشان توري په يوه کلمه کې په پرله پسی ډول راشي

دمثلينو ادغام ورته وايي : لکه : فقلنااضرب بعصاک الحجر - فماربحت تجارتهم .

فَمَا رَبِحَت تّجَارَتُهُمْ

وَقَد دّخَلُواْ

وَذَا النُّونِ إِذ ذّهَبَ مُغَاضِباً

۳- دمتقاربينو ادغام :

كه دوه داسې توري په يوه كلمه پرله پسې راشي چې مخرجونه يې سره نژدې صفتونه

سره مخالف وي وي دمتقاربينو ادغام ورته ويل كيږي .

وَقُل رّبِّ زِدْنِي عِلْم

بَل رّفَعَهُ اللّهُ

په عمومي ډول په ادغام كې څه نورې خبرې هم شته چې هغه به ورسته ذكر شي ولی د

ساكن نون او تنوين احكام همغه د يرملون توري دی .

اقلاب :

اقلاب لغتاً يو څيز په بل څيز بدلولو ته وايي او دعلم تجويد په

اصطلاح كې كه تر ساكن نون او تنوين وروسته د ب توری په كومه

کلمه کې راشي نو تنوين يا ساکن نون په ميم بدليږي او غنه پکې

ضروري وي .

مثال: مِنْ بَعْدِ _ مِمْ بَعْدِ ، سَمِيعٌ بَصِيرٌ

دعملي مثال اوريدلو لپاره دلته کليک وکړئ بيا د غنې او اقلاب

په لاوسپيکرو کليک وکړئ .

## اظهار :

اظهار په لغت کې څرګندولو ته وايي ،اود علم تجويد په اصطلاح

کې د دوه تورو جلاکول دي ،داسې چې د ساکن نون اوتنوين څخه

وروسته د حلقي حروفو (ء،ه ،خ،ح،ع،غ) څخه يوراشي ،ساکن نون

يا تنوين اظهاريږي او له وروستي توري څخه جلا تلفظ کيږي نون

په طبعي شکل له خپل مخرج څخه ادا کيږي،ځکه چې نون د خولې

له ابتدا څخه راوځي ،او حلقي حروف په حلق کې ادا کيږي چې

فاصله يې يو تر بله ډيره ده .

| | | | |
|---|---|---|---|
| ء ـ ا : | يَنْأَوْنَ | مِنْ اَمْرِهِمْ | كُلٌّ امَنَ |
| ه : | مِنْهُمْ | اِنْ هُوَ | فَرِيقاً هَرِي |
| ع : | اَنْعَمْتَ | مَنْ عَمِلَ | سَمِيعٌ عَلِيمٌ |
| ح : | تَنْحِتُونَ | فَمَنْ حَجَّ | حَكِيمٌ حَمِيدٌ |
| غ : | فَسَيُنْغِضُونَ | مِنْ غِلٍّ | قَوْلاً غَيْرَ |
| خ : | اَلْمُنْخَنِقَةُ | مِنْ خَيْرٍ | حَكِيمٌ خَبِيرٌ |

**اخفاء :**

اخفاء په لغت کې پټولو ته وایی او د علم تجوید په اصطلاح کې د

اظهار،ادغام او اقلاب له حروفو څخه پرته د هجاد نورو پنځلسو

(ت،ث،ج،د ،ذ ،ز،س،ش،ص،ض،ط،ظ،ف،ق،ک) تورو څخه یو

توری د ساکن نون یا تنوین څخه وروسته راشي نو دغُنې سره اخفاء

پکې کیږي .

یعنی د ساکن نون یا تنوین د اداکولو مخرج د اخفا د حرف مخرج

ته وړل کیږي او هلته ادا کیږي .

یا په بل عبارت کله چې د اخفاء توري له ساکن نون او تنوین څخه

وروسته راشي نو ساکن نون یا تنوین په متوسط ډول د اظهار او

ادغام تر منځ ادا کیږي .

مثالونه :

| یوه کلمه | دوه کلمې | تنوین |
|---|---|---|

ت: اَنْتُمْ وَاِنْ تُبْتُمْ يَوماً تُرْجَعُونَ

ث: مِنْ ثَمَرَةٍ مِنْ ثَمرَةٍ خَيرٌ ثَواباً

ج: اَنْجَينَا اِنْ جَائَكُم لِكُلٍّ جعَلْنا

د: عُنْدَهُمْ مِنْ دارِهِم قِنوانٌ دانِيَةٌ

ذ: اَنْذِرْهُمْ مِنْ ذُرِّيَّةٍ يَتِيماَ ذامَقرَبَةٍ

ز: اَنْزَلَ مَنْ زكيّها نَفساً زكِيّةً

س: اِنْسانٌ اَنْ سَيَكُونُ لَيالٍ سَوِيّاً

ش: اَنْشَأْنا مِنْ شَرِّ غَفُورٌ شَكُورٌ

ص: يَنْصُرُكُمْ اَنْ صَدُّوكُم رِيحاً صَرصَراً

ض: مَنْضُودٍ مِنْ ضَعفِ قَوماً ضالّينَ

ط: قِنْطارٍ مِنْ طِينٍ صَعِيداً طَيِّباً

ظ: اُنْظُرْ مَنْ ظَلَمَ ظِلّاً ظَلِيلاً

ف: اَنْفُسَهُمْ مِنْ فَضلٍ خالِداً فِيهَا

ق: يَنْقَلِبُ مِنْ قَبلِ سَمِيعٌ قَرِيبٌ

ك: عَنْكُمْ مَنْ كانَ قَولاً كَرِيماً

د ساكن ميم احكام

ساكن ميم دری احكام لري ادغام ،اخفاء او اظهار

1- ادغام :

ساكن میم فقط په ميم كې ادغامږي .

یعنی كه د ساكن ميم نه ورسته بل ميم راشي نو ميم په ميم كې ادغام كيږي او د یوه

حركت به اندازه غنه پكې كيږي . لكه : (أَمْ مَنْ) (وَمِنْهُمْ مَنْ) (كَمْ مِنْ) (لَهُمْ مَغْفِرَةٌ) .

2- اخفا :

كه له ساكن ميم ورسته د (ب ) حرف راشي له غنی سره اخفا كيږي .

احكام تجويد لیکی چې كه د ميم نه ورسته د ب حرف راشي اخفااو اظهار دواړه روا

دی ولی اخفاء كول غوره دي .

مثال : (هُمْ بَارِزُونَ (كَلْبُهُمْ بَاسِطٌ) (إِنَّ رَبَّهُمْ بِهِمْ).

اظهار :

د ادغام او اخفاحروفو (م،ن) پرته نور چې شپږويشت حروف دی که له ساکن ميم

ورسته راشي اظهار کيږي . يعنی ساکن ميم له غنی پرته ښکاره او له خپل مخرج څخه

ادا کيږي .

لکه : أَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ - أَمْ حَسِبْتُمْ- أَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

خو د نورو حروفو په پرتله په (و ، ف ) تورو کې د مخرج د اختلاف په وجه اشد اظهار کيږي لکه : په "و"کې اَمْوَلٍ او په "ف" لکه كَيْدَهُم فی تَضْلِیْلٍ

## د تجويد د زده کړې پنځمه برخه (د حروفو صفات(

Submitted by dawat on اثنين, 30-11-2009 09:58

# دحروفو صفات

صفت د حرف د ادا په وخت کې دا سې کیفیت دی چې له بل حرف

سره یې فرق وشي د حروفو د صفاتو یوه ګټه همدا ده چې د هم

مخرج یا قریب المخرج حروفو فرق وشي .

دصفاتو په شمیر کې د علماؤ اختلاف دی امام ابن الجزری په نزد

اولس دی او ابو محمد مکی بن ابې طالب القیسی بیا

څلورڅلویښت ښودلی ،دلته د امام ابن الجزري په نزد اولس

صفات تر مطالعې لاندې نیول شوی دي.

صفات په دؤ برخو ویشل شوي دي متضاد او غیر متضاد ،متضاد

هغه صفات دی چې د هغه لپاره ضد وي او غیر متضاد هغه صفات

دي چې دهغه لپاره ضد نه وي .

متضاد صفات : متضاد صفات لس دی چې یو دبل ضد دي

| استفال | ضد | استلاء |
|---|---|---|
| رخوت | ضد | شدت |
| همس | ضد | جهر |
| انتفاح | ضد | اطباق |
| اصمات | ضد | اذلاق |

۱- استلاء : په لغت کې لوړوالي ته وايې او په علم تجويد کې کوم

حروف چې دا صفت لري او چت او ډک اداکيږي .

يعنى د اداکولو په وخت کې دژبې بيخ پورته تالو ته لوړيږي د

لوړيدو له کبله دا توري ډک تلفظ کيږي .

حروف يې اوه دى چې پدې جمله کې جمع شوي (خُصّ ضَغطٍ قِظ) .

۲- استفال : په لغت کې ټيټوالي ته وايې او په علم تجويد کې کوم

حروف چې دا صفت لري نازک او نرم اداکيږي .

يعنى د اداكولو په وخت كې دژبې بيخ تالوته نه لوړيږي له دې كبله

دا تورې نرم تلفظ كيږي .

حروف يې ۲۲ دى (ء ب ت ث ج ح د ذ ر ز س ش ع ف ك ل م ن ه و ي

ا) څخه عبارت دى .

۳- شدت : په لغت كې سختى يا قوت ته وايي اوپه علم تجويد كې

كوم حروف چې دا صفت لري په سختى سره اداكيږي .

يعنى د اداكولوپه وخت كې په مخرج كې آواز په سختى سره

ودرېږي اود آرامتيا په وخت كې آواز وربانديې بنديږي . حروف يې

اته دى (أجد قط بكت) جمله كې جمع شوي .

۴- رخوت: په لغت كې سستوالى ته وايې اوپه علم تجويد كې كوم

حروف چې دا صفت لري په كمزورۍ اونرمۍ اداكيږي . د

اداكولوپه وخت كې په مخرج كې آواز جريان پيداكوي .

حروف یې ۱۶ دی :(ث ح خ ذ ز س ش ص ض ظ غ ف هـ و ي

ا)عبارت دی

۵- جهر: په لغت کې ښکاره والی ته وایې او په علم تجوید کې کوم

حروف چې دا صفت لري په لوړ آواز اداکیږي .

یعنی د اداکولو په وخت کې په مخرج کې آواز په داسې زورسره

ودریږي چې ساه بنده وي او په آواز کې یو ډول لوړوالی راشي .

حروف یې (عَظمَ وَزْنُ قَارِي ذِي غَضٍّ جِدِّ طَلَب) جمله کې جمع شوي

۶- همس: په لغت کې پټوالی ته وايې او په علم تجويد کې کوم

حروف چې دا صفت لري په ټيټ آواز اداکيږي.

يعنی د اداکولو په وخت کې په مخرج کې آوازپه داسې کمزوری

سره ودريږي چې ساه جاري وي او په آواز کې يو ډول ښکته والی

راشي.

حروف يې لس دی چې عبارت دی له (فحثه شخص سکت).

۷- اذلاق : په لغت کې تيزی ته وايې اوپه علم تجويد کې کوم

حروف چې دا صفت لري د ژبی له ارخ او شنډو نه په تيزی اوآسانی

سره اداکيږي .

حروف يې شپږ دی چې عبارت دی له (فر من لب ) .

۸- اصمات: په لغت کې چوپوالی ته وايې اوپه علم تجويد کې کوم

حروف چې دا صفت لري د تلفظ په وخت کې ثقيل او سخت ادا

کيږي .

حروف يې ۲۳ دی عبارت دی له (جز غش ساخط صيد ثقة إذ وعظه

يحضك).

۹- اطباق: په لغت کې تماس اونښليدو ته وايې اوپه علم تجويد

کې کوم حروف چې دا صفت لري د حروفود ادا په وخت کې دژبې

منځ پورته تالوسره مښلی. حروف يې څلور دی:

(ص ض ط ظ).

۱۰- انفتاح : په لغت کې خلاصوالی ته وايې او په علم تجويد کې

کوم حروف چې دا صفت لري د حروفو د ادا په وخت کې ژبه له

تالونه جلا وي .

حروف يې ۲۵ دی (من أخذ وجد سعة فزكا حق له شرب غيث).

غير متضاد صفتونه :

غیر متضاد صفتونه اوه دی انحراف ،قلقله ،لین

،صفیر،تکریر،تفشي او استطالت

١- انحراف : په لغت کې کوږوالی ته وايې دا صفت د "ل" او "را" په

حروفو کې دی چې د ادا په وخت کې دخپل مخرج څخه کم

کوږوالی پیدا کوي .

٢- قلقله : په لغت کې حرکت اوخوځښت ته وايي .

د قلقلی د حروفو صفت دادی چې د سکون په حالت کې د هغې د

تلفظ پر مهال په مخرج کې خوځښت رامنځته کیږي د قلقلی

حروف پنځه دی چې په قطب جد کې جمع شوي دي .

۳- لین : معنی ده سهولت او نرمي داحروف د ادا په وخت له مخرج

څخه په نرمۍ اداکیږي .

حروف یې دوه دی واو یا چې خپله ساکن وي ماقبل یې مفتوح

(زور) لرونکی توری وي .

۴- صفیر :

د صفیر معنی داده چې ددغو حروفو د تلفظ پر مهال د شپیلۍ د

آواز په شان آواز غوږ ته رسیږي له همدې کبله هغه ته صفیریه

حروف وایې چې له "ص ز س"حروفو څخه عبارت دي .

۵- تکریر :

دا صفت یوازی په "ر" کې لیدل کیږي چې د ادا په حالت کې یو ډول

لړزه پیدا کیږي ،یعنی د ادا په وخت ژبه رپیږي پداسې ډول چې

"را" تکرار تلفظ نشي .

۶- تفشي :

په لغت کې شیندلو ته وایې دغه صفت د"ش" د حرف دی چې ددی

توری ادا کولو په وخت کې آواز په خوله کې خپریږي .

استطالت :په لغت کې اوږدوالی ته وایې داصفت لرونکی یوائې

د "ض" حرف دی چې د ادا په وخت کې دمخرج له شروع تر

پای‌ه‌تهول اضراس غاښونه نیسي .

## دځنومشابح حروفو ترمنځ فرق

Submitted by dawat on أحد, 06-12-2009 08:22

دځنومشابح حروفو ترمنځ فرق :

د «ذ» او «ز» ترمنځ فرق :

د «ذ» حرف هرکله چې د ژبې د شاطرف سر د پاسنیو ثنایا له خوکو سره ولګیږي اداکیږي مګر د «ز»

مخرج کله چې د ژبې څوکه د ذکرشویو غاښونو سره نږیدی شي اداکیږي نو ویلای شو چې د «ذ» په

ادا کې د ژبې څوکه بیرون خواته راوځي ولی د «ز» په تلفظ کې نه راوځي .

او «ز» حرف د سفیر صفت لري چې مخکې بیان شودشپلی په شان آواز لري .

د «ث» او «س» ترمنځ فرق :

د «ث» او «س» حروفو تر منځ همداسې فرق دی کله د «ذ» او «ز» تر منځ چې موجود ؤ ځکه «س» د

«ز» له مخرج څخه ادا کیږي او دصفیر صفت لري پداسې حال کې چې «ث» د «ذ» له مخرج څخه

ادا کیږي د همس صفت او رخوت په هغه کې واضح دی .

د «ظ» او «ض» تر منځ فرق :

د «ظ» حرف کله چې د ژبې پاس طرف سر د مخامخ پاسنیو غاښونوله څوکو سره و لګول شي ادا

کیږي د «ظ» په تلفظ کې د ژبې دڅوکې طرف بېرون ته راوځي مګر د «ض»مخرج کله چې د ژبې

یواړخ له پاس خوا (له ښي څخه چپ لور ته ) د اضراس غاښونو سره ولګول شي د«ض» توری تلفظ

کیږي البته له چپې خوا څخه یې ادا کول اسانه دی ،نوځکه د ظا مخرج له ض نه لری دی .

اوبل داچې په «ض» حرف د استطالت صفت لري چې بل په هیڅ کوم حرف کې دا صفت نشته .

## د را او لام حروفو احکام (تفخیم او ترقیق )

Submitted by dawat on اثنين, 07-12-2009 07:54

# د "را" او "لام" حروفو احکام (تفخيم او ترقيق)

را :

د "را" توری که چيری زور يا پيښ ولري يا د "را" حرف خپله ساکن مخکې حرف يې زبر يا پيښ ولري نو پدې صورت تفخيم کيږي يعنی "را" ډکه تلفظ کيږي .

مثالونه : رَبُّكَ– رُزِقُوا– مَّرْفُوعَةٌ– عُرْفاً

2- که د "را" حرف زير ولري يا "را" ساکنه او مخکې حرف يې زير ولري نو پدې صورت کې ترقيق کيږي "را" باريکه لوستل کيږي .

رِحْلَةَ - فِرْعَوْنَ

لام :

په لفظ جلاله (الله ج) کې که د لام نه مخکې حرف زور يا پيښ ولری تفخيم کيږي "لام" ډک تلفظ کيږي لکه : هُوَ اللّهُ - نَارُ اللّهِ الْمُوقَدَةُ

همدارنګه که د"لام" نه مخکې حرف ساکن وي له هغه مخکې حرف زور يا پيښ ولري پدې صورت کې هم د "لام" توری ډک ادا کيږي لکه :عَلَى اللّهِ - اعْبُدُوا اللّهَ وَاتَّقُوهُ .

۲- که "لام" نه مخکې حرف زیر ولري یا د "لام" نه مخکې ساکن دهغه مخکې حرف زیرولري ترقیق کیږي یعنی "لام" ډک نه ادا کیږي لکه : قُلِ اللّهُمّ - وَيُنَجِّي اللّهُ

مګر لام (ال) بغیر له لفظ جلاله نه په نوروکلماتو کې په دوه ډوله دی :

1- ال شمسی چې نه تلفظ کیږي بلکې په ورستی حرف کې ادغام کیږي .

لکه :ألنّاسُ، ألطّآمّة

د شمسی ال د پیژندني علامه دا ده چې د لام نه وروسته حرف شد لرونکې وي .

2- ال قمري چې تلفظ کیږي ساکن وي د شد پرځای د غږوندي علامه وربانديې وي .

لکه :ألْقَمَرُ، ألْعَلِيمُ

د تجوید د زده کړی شپږمه برخه د مد احکام

Submitted by dawat on اثنين, 14-12-2009 09:04

# د مد احکام

مد په لغت کې کش کولو ته وایې او د تجوید په اصطلاح کې د مد

تورو ته له طبعی اندازی ذیات امتداد ورکولو ته وایي .

د مد توری دری دی (الف ، واو ، یا ) هرکله چې له دغه دریو

حروفو ورسته همزه یا سکون راشي د مد توري له طبعی اندازی

ذیات کش کول کیږي .

یعنی د مد سبب دوه څیزونه دی همزه – سکون .

قصر (لنډول ) قصر د مد ضد دی چې د مد حروف په طبعی ډول

کش کول کیږي یعنی د یوه الیف یا دوو حرکتونو په اندازه دا ځکه

چې د مد له حروفو ورسته د مد سبب همزه او سکون نه وي راغلي

.

هغه مد چې له مدې حروفو ورسته همزه او سکون راغلی وي د

فرعی مد په نوم هم یادیږي

هغه مد چې له مدې حروفو ورسته همزه او سکون نه وي د قصیر یا

اصلی مد په نوم هم یادیږي .

دفرعی مدډولونه :

فرعي یا غیر طبعی مد هغه مدته وایی چې د مد تر حروفو وروسته

همزه یا سکون راشي چې فرعي مدپه لاندې ډولو ویشل شوی :

### ۱- متصل مد :

هرکله چې دمد له تورو ورسته همزه راشي او د مد حرف او همزه

دواړه په یوه کلمه کې وي ،پدغه صورت کې د مد حرف د شپږو

حرکتونو په اندازه کش کول کیږي ،دحفص په نزد څلور یا پنځه

حرکته کش کول کیږي اوحکم یې واجب دی . لکه :

شَآءَ – جَآءَ – أَلْمَلٰئِكَةِ

### ۲- منفصل مد :

که د مد له حروفو ورسته همزه وي او دمد حرف او همزه په یوه

کلمه کې نه وي بلکې دمد حرف په یوه کلمه کې او همزه پر بله

کلمه کې وي د مد حرف بیا هم د شپږو حرکتونو په اندازه کش کول

کیږي د حفص په نزد څلور یا پنځه حرکته کش کول کیږي حکم یې

جائز دی .

مَآ أُنْزِلِ - أِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ

۳- لازم مد : هغه مد دی چې سبب یې سکون لازمي وي یعنی

اصلی وي تغیر نه کوي سکون یې د وقف له کبله نه وي په همدې

وجه یې لازمي بولې او کش کول یې په اتفاق د ټولو علماوو د

شپږو حرکتو په اندازه دی .

لازم مد په دوو ډولو ویشل شوی کلمی او حرفي چې هریو بیا په

**مثقل** (درومد) او **مخفف** (سپک) **ویشل** شوی دي .

مثقل حرفی مد : **هغه مد ته وایی چې د مد حرف او سبب** (سکون)

چې مشدد هم وي په یوه حرف کې راغلی وي لکه : الم - طسم

پدې حروفو کې ځکه مد وي چې (لام) یا (سین) کې وینو چې د ی

حرف چې مد توری دی ورسته سکون راغلی چې میم ساکن او

سین کې نون ساکن دی .

مخفف حرفي مد : هغه مد ته وايي د مد حرف او سبب يې (بې له

شده سکون ) په يوه حرف کې راشي . لکه ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ - ص

وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ

دلته هم په ق حرف کې مد دی ځکه (قاف ) وينو چې الف د مد حرف

دی دهغه نه وروسته ساکن حرف دی چې ف توری دی .

مثقل کلمی مد :هغه مدته وايي چې د مد حرف اوسبب يې (سکون)

په مشدد ډول په يوه کلمه کې راشي

مثقل (درومد) مد بلل کيږي ځکه چې سبب يې شد کرونکی حرف

وي .

وَلاَ الضَّالِّينَ - لْحَاقَّةُ

مخفف كلمى مد : هغه مد ته وايى چې د مد حرف او سبب يې (بې

له شده سكون) په يوه كلمه كې راشي . لكه : ءالئن

۴- عارض مد :

كه د مد له حرف ورسته ساكن حرف واقع شي چې سكون يې اصلى

نه وي بلكې عارضي وي يعنى د وقف له امله ساكن شوي وي نو

دلته هم د مد له حرف ورسته سكون واقع شو چې مد حرف دوه يا

څلور يا شپږ حركتو په اندازه كش كول كيږي .

كه وقف ونه شي نو مد له منځه ځي .

لکه : أَلْعَلَمِينَ

د لین مد :

لین نرمۍ ته وایې چې دا صفت په دو حرفو واو چې ساکن وي

ماقبل یې زور لرونکی توری وي او یا ساکنه ماقبل یې زور

لرونکی وي .

نو که د ساکنی "ی" او "و" څخه د مخه توری فتحه (زور) ولري نو

دغه ډول "ی" او "و" ته دلین حروف وایي د عارض مد په شان کش

کول کیږي لکه : خَوْفٍ ـ قَوْمُ ـ يَوْماً ـ لَبَغَوْا

په لین باندې که مد ونه شي هم صحیح دی ولی مد کول یې غوره

دي ځکه چې سبب یې لازمي دی .

د متصل یا واجب مد ،عارض مد او لازمي مد مثالونه لپاره دلته

کلیک وکړئ

یا که مو له لومړي برخې څخه د تجوید سافتویر ډونلوډ کړي

وي دهغه عملي مثالونو ته

## د تجوید دزده کړی اومه برخه د وصل همزې احکام

Submitted by dawat on اثنين, 2009-12-28 08:47

## د وصل همزې احکام

دقرآنکريم ځنی کلمات داسې وي چې لومړی حرف يې ممکن حرکت (زور ،زير ،پيښ) لرونکی وي د داډول کلماتو د تلفظ په پيل کولو کې څه مشکل نه وي .

مګر پداسې صورت کې چه دکلمې لومړی حرف ساکن وي نودهغه د تلفظ شروع غير ممکنه وي نوبايد د هغه د ابتداء لپاره د وصل همزه وکاروو ترڅو وتوانيږو دکلمې لومړی حرف تلفظ کړای شو په همدې وجه د (وصل همزه) په نوم ياديږي .

يعنی د وصل د همزي په وسيله د کلمی لومړی ساکن حرف تلفظ کيږي .

دوصل همزه په دريو کلمو اسم ، فعل اوحرف کې واقع کيږي .

### ۱- حرف :

په قرآنکريم هغه حرف چې د وصل همزه اخلي حرف تعريف (الف ،لام) دي چې دوصل په حالت کې زور اخلي لکه : عاقِبَةُ الدّارِ - اَلدّارِ -الْقَمَرَ - اَلْقَمَرَ

### ۲- اسم :

دوصل همزه چې کله د اسم له کلمې سره وصل شي مکسوره (زير لرونکی وي) لکه :

مسيحُ آبْنُ مَرْيَمَ(اِبْنَ)-مَرْيَمَ آبنَتَ عِمْرانَ(اِبْنَتَ)-اَبُوكِ آمْرَءَ(اِمْرَءَ)-ثانِي آثْنَيْنِ(اِثْنَيْنِ ، اِثْنَتَيْنِ)-مِنْهُ آثْنَتا(اِثْنَتا).

### ۳- فعل :

د اسم اوحرف پرته د قرآنکريم نور کلمې دفعل دي

دفعل د کلمې لومړی حرف ته ګورو که د لومړی حرف حرکت زوریازیر لرونکی وی نو دوصل همزه مکسوره (زیرلرونکی) وي او که نومړی حرف مضموم (پیښن لرونکی) وی نو د وصل همزه به هم مضموم

وي لکه: فَقَدِ آهْتَدَوا - اِهْتَدَوا)-(رَبّنَا آغْفِرلَنَا - اِغْفِرلَنَا)-(رَبِّ آنْصُرْنِي __ أُنْصُرْنِي).

**Blog reactions**
No reactions yet.

- عِلّق
- قرأت 171 مرة

# د تجوید دزده کړی ورستۍ برخه د وقف او وصل احکام

Submitted by dawat on اثنين, 28-12-2009 08:55

## دوقف او وصل احکام

وقف دریدلو ته وایي پداسې شان چې ساه واخستل شي .

دقف اووصل پیرندل یو له اهومباحثو دعلم تجوید څخه دي چې د قرآنکریم

لوستوکی بیې باید په پوره اهتمام په نظر کې ونیسي .

حضرت علی رض د (وَرَتّلِ الْقُرآنَ تَرْتِيلاً) په تفسیر کې ویلي **هو تجوید**

**الحروف، ومعرفة الوقوف یعني دترتیل نه مراد د حروفو تجوید**

**اود وقفو پیرندل دي .**

او ابن الأنباري وايي چه وقف او وصل پيژندل ډيرضروري دي په

خاصه توګه دهغه چا لپاره چې د قرآنكريم په معنى نه پوهيږي

نوهغه به يې په فواصلو پيژني نوويلاى شوچې دا دقرآن د تعليم

لومړي واجب دي

په آخردكلمې باندې دريدل يا وقف په دوو طريقو تر سره كيږي

١- وقف ابدال :

(بدلول) دوقف په حالت كې دكلمې آخري تورى په بل توري

بدليږي

الف) : كله چې آخر دكلمې تاء (ة) وي دوقف په حالت كې په (ها)

بدليږي لكه : (رَحْمَةً - رَحْمَهْ)

ب ) : **هغه کلمات چې په تنوین (دوه زورونه ،دوه زیرونه او دوه**

**پیښونو) ختم شوی وي دوقف په حالت کې په مدي الف مدلیږي**

**لکه** : (حِساباً - حِسابا)

## ۲- وقف اسکان :

**(ساکن کول ) دابدال نه بغیرنورو ټولو کلماتو کې دوقف په حالت د**

**کلمې آخري توری څخه حرکت لرې کیږي او ساکن ګرځول کیږي**

**لکه** : یَوْمُ __ یَوْمْ

### دوقف نښې :

د هري ژبې ویونکی چه کله خبرې کوي نو چیرته دریږي او چیرته نه دریږي ،کله ډیر

او کله لږ ایساریږي او په ودریدو او نه ودریدو کې د خبرې پوره بیان او مفهوم کې

ډیر لوی دخل دی .

نو ضروري خبره ده چې ددی عظیم کتاب لوستونکی ددی رموزو یا علائمو پوره خیال

وساتي او دغه علایم چې اهل علمو د دریدو او نه دریدو نښي مقرري کړي دی چې په

لاندي ډول دی :

○ – چیرته چه خبره پوره شي هلته وړه غوندي دایره وي ،:داپه حقیقت کې غونډه (ت)

ة ده چې ة پرځای یوه وړه دایره وي چې دې ته آیت وایې دا دوقف تام علامه ده پدی

ودریدل پکار وي.

م – دا دوقف لازم علامه ده پدې باندې هرومرو ودریدل پکار دي .

ط – دا دوقف مطلق نښه ده پدې باندې دریدل پکار دي .

ج- دا د جایز وقف نښه ده دلته دریدل غوره دی او نه دریدل جایز دي .

ز- د اد مجوز وقف نښه ده دلته نه دریدل غوره دي .

ص – دادمرخص وقف نښه ده دلته پیوست لوستل پکار دي لیکن که څوک ستړی شي

دریدل هم جائز دي .

صلی – داد الوصل أولی (یعنی وصل غوره دی) دلته پیوست لوستل غوره دی .

ق- دا د قیل علیه الوقف خلاصه دلته دریدل پکار نه دي .

صل – دا د قد یوصل نښه ده دلته کله دریدل او که نه دریدل لیکن دریدل غوره دي .

قف – داد قف نښه ده یعنی ودریږه دا علامه هلته پکاریږي چې د لوستونکی د

پیوستی وینا احتمال وي .

س یا سکته – داد سکتط نښه ده دلته لږ وخت دریدل پکار دي خو تنفس به باقی وي

(سا به نه ماتوي ).

وقفه – دا داوږیدی سکتې علامه ده دلته د سکتی په نسبت ډیر دریدل پکار دي

لیکن چه نفس جایری وي .

لا- د لا معنی ده یعنی نشته چې دا علامه کله د ایت د پاسه لیکل شوی وی او کله د

عبارت د ننه وي که د عبارت د ننه وي هلته دریدل بالکل نشته او که د ایت د پاسه

وي پدی کې اختلاف دی ځنی وايې دريدل روادي ځنی بيا وايې نه دريدل رواه دي خو

که ودريږي يا ونه دريږي په مطلب کې کوم خلل نه راځي .

ک- دا د کذالک علامه ده يعنی کومه علامه چې مخکې تيره شوي وي دلته هم همغه

ګڼل پکار دي .

۵- دا علامه د ځنو په نزد آيت دی که وقف وشي نو دوباره ويل نشته .

.. – دا دريو ټکو وقف دی دې ته معانقه ويلی شي کله ددی اختصار په مع سره ليکلی

وي دا دواړه وقفونه لکه چې معانقه کوي غوندی ددی حکم دادي چې پر يو دريدل او

پر بل نه دريدل پکار دي